ورځپانه
# هيواد
مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
سه شنبه د شعبان المعظم ۲۶ مه ۱۴۴۶ق کال، د کب ۷ مه ۱۴۰۳ ل کال، د فبروري ۲۵ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵۵۳ مه، پرله پسې ګڼه ۶۴۳ مه، اتمه دوره

## د اوبو نړیوال کنفرانس په اړه د رئیس الوزراء پیغام!

اوبه د ژوند سرچينه او د انساني ټولنې د بقا او پرمختګ له اساسي عواملو ګڼل کېږي. په ټولو هېوادونو کې غذايي امنيت، عامه روغتيا او اقتصادي وده په يو ډول په اوبو پورې اړه لري.ټولو ته معلومه ده، چې په نړيواله کچه اقليمي بدلونونو، ناکافي بارانونو، ويجاړوونکو سېلابونو او مسلسلو وچکاليو جدي ستونزې پېښې کړې دي.دغه راز په ځانګړي ډول زموږ په هېواد کې د ځمکې لاندې اوبو بې کنټروله اېستنې نه يوازې د اوبو سرچينې کمزورې کوي، بلکې محيطي او ټولنيزې بدې پايلې هم لري، چې د راتلونکو نسلونو د اوبو اړتياوو د پوره کولو لپاره جدي ګواښ ګڼل کيږي.د افغانستان اسلامي امارت د اوبو د سرچينو غوره مديريت د وخت اړتيا ګڼي، په ځانګړي ډول د ځمکې لاندې اوبو د سم کارولو او د اقليمي بدلونونو د اغېزو راکمولو په موخه د ځانګړو تګلارو پلي کولو ته ژمنتيا لري.موږ باور لرو چې د اوبو د سرچينو د مديريت په برخه کې د جامع حللارو د تدوين او پلي کېدو له لارې کولی شو، د اوبو پر سرچينو شته فشار راکم او دغه ارزښتناک امانت تر راتلونکو نسلونو پورې په خونديتوب سره ورسوو. د دې مهم کنفرانس له لارې ټولو ګډونوالو ته بې ساری فرصت برابر شوی، چې د اوبو سرچينو د مديريت او خونديتوب په اړه خپل نظريات... ۳مخ

### د رياست‌الوزراء اقتصادي مرستيال:
## له هرې ممکنې لارې د اوبو د مديريت لپاره اساسي ګامونه اخلو




د رياست‌الوزراء اقتصادي مرستيال ملا عبدالغني برادر اخوند پرون د اوبو نړيوال څېړنيز کنفرانس کې ګډون او وينا وکړه.د رياست‌الوزراء اقتصادي مرستيال ياد کنفرانس ته د خپلو خبرو پر مهال وويل: اوبه د الله تعالی يوازينی بې بديله نعمت دی او له هغه پرته د انسانانو، حيواناتو او نباتاتو ژوند، د هېوادونو اقتصادي وده او پراختيا امکان نه لري.د اسلام مبارک دين د يوې اسلامي ټولنې په توګه موږ ته له اوبو سره د سم چلند په اړه ديني مکلفيت راجع کوي او له بل لوري له نړۍ سره د سيالۍ، اقتصادي ودې او د راتلونکو نسلونو د حقونو خوندي کولو لپاره د اوبو پايښت لرونکي او مسلکي مديريت ډېر اړين او ستر ملي مکلفيت ګڼل کېږي.ملا عبدالغني برادر اخوند زياته کړه:... ۳مخ

## اذربايجان له افغانستان سره اړيکو ته اهميت ورکوي

د بهرنيو چارو وزارت مالي او اداري مرستيال دوکتور محمد نعيم د اذربايجان له سفير الهام محمدوف سره ليدنه وکړه. مالي او اداري مرستيال د "کوپ ۲۹" غونډه کې د افغان پلاوي د ګډون او د اذربايجان له همکاريو د مننې ترڅنګ، د



په دې ليدنه کې د افغانستان او اذربايجان ترمنځ د دوه اړخيزو سياسي، اقتصادي او فرهنګي همکاريو پر پراختيا خبرې وشوې.د بهرنيو چارو وزارت دواړو هېوادونو ترمنځ اړيکې مهمې وبللې او د دې اړيکو د لاپياوړتيا هيله يې څرګنده کړه.محمدوف د اذربايجان او افغانستان ترمنځ... ۳مخ

## د کورنيو چارو وزارت پلاوی ايران ته تللی

د کورنيو چارو وزارت له نشه يي توکو سره د مبارزې د معين لوی پاسوال ملا عبدالحق اخوند همکار په مشرۍ يو پلاوی د ايران د حکومت په رسمي بلنه پرون له غرمې مخکې له پلازمېنې کابل څخه ايران ته روان شو.ياد وزارت په خپله اکس پاڼه ليکلي چې ټاکل شوې ده په دغه سفر کې به د دواړو هېوادونو ترمنځ د نشه يي توکو په ځانګړې توګه د نشه يي توکو د تشخيص او د نشه يي توکو د مخنيوي پر ګډې مبارزې او د همکاريو د پراختيا په تړاو خبرې اترې وشي.

## تېره مياشت ۲۴۶۵ بهرنيانو افغانستان ته تګ راتګ کړی

د احصايې او معلوماتو ملي اداري د روان لمريز کال په سلواغې مياشت کې هېواد ته د نږدې ۲ زره ۵۰۰ بهرنيانو د تګ راتګ د ثبت کېدو خبر ورکړی دی.سرچينې د يوې خبرپاڼې په خپرولو سره ويلي ،چې د احصايې او معلوماتو ملي اداري د تېرې يوې مياشتې په اوږدو کې د هوايي ډګرونو او ځمکنيو بندرونو له لارې هېواد ته د ۲ زره ۴۶۵ بهرنيو وګړو تګ او راتګ ثبت کړی دی.



د خبرپاڼې د معلوماتو له مخې ثبت شوې شمېرې ښيي، چې په ياده موده کې د ۳۶ ښځينه وو په ګډون ۱۳۱۱ بهرني وګړي هېواد ته راغلي او د ۲۳ ښځينه وو په ګډون ۱۱۵۴ نور له هېواده وتلي دي.

سرچينې زياته کړې، چې د ثبت شويو شمېرو له مخې ښکاري، چې ۱۲۸۵ کسان له ځمکنيو بندرونو او ۲۶ تنه نور د هوا له لارې هېواد ته راغلي، چې له دې ډلې يې ۱۹۳ تنه د هېواد د لرغونو او تاريخي سيمو... ۳مخ

## تېرکال د افغانستان او چين ترمنځ د ۸۰۹ ميليونو ډالرو په ارزښت راکړه ورکړه شوې

د صنعت او سوداګرۍ وزارت وايي، چې د افغانستان او چين ترمنځ سوداګريزې اړيکې عادي دي او په ۲۰۲۴ کال کې د دواړو هېوادونو ترمنځ د ۸۰۹ ميليونو ډالرو په ارزښت



صادرات او واردات شوي او په دې برخه کې د افغان سوداګرو ستونزې هم حل شوې دي.د ياد وزارت د چارواکو په وينا: ګران بيې ډېرې، وچې مېوې او غالۍ د چين هېواد ته صادرې شوي او تر څنګ يې برېښنايي ماشينونه، رخت او د فابريکو خام توکي له ياد هېواد څخه افغانستان ته را وارد شوي دي.بله خوا د سوداګرۍ او پانګونې خونه وايي، چې چين افغان سوداګرو ته د وېزو د ورکړې تر څنګ په برېښنايي برخو کې ګڼې اسانتياوې برابرې کړې دي.ورته مهال افغان سوداګر وايي... ۳مخ

## د هيواد په ۱۶ولايتونو کې د پوليو واکسين کمپاين پيل شو

د عامې روغتيا وزارت د مسئولينو په وينا ياد وزارت د نړيوالو ادارو په ملاتړ د ۲۰۲۵ز کال لپاره هېواد په مرکزي، سوېل، ختيځ، لوېديځ، سوېل ختيځ او د شمال ختيځې حوزې په ۱۶ ولايتونو




د پوليو واکسين دويم فرعي ملي کمپاين پيل کړ. دغه کمپاين د کې د فبروري له ۲۴ مې تر ۲۶مې پورې پلي کېږي چې په ترڅ کې به يې شاوخوا (۶.۳) ميليونه له پنځو کلونو کم عمره ماشومان واکسين شي. د يادولو وړ ده چې په (ننګرهار، کونړ، لغمان، نورستان، هلمند او کندهار ښار) کې به د پوليو واکسين څلور ورځنی کمپاين ترسره شي چې د فبروري تر ۲۷مې نېټې به دوام وکړي. د عامې روغتيا وزارت د مسئولينو په وينا: د عامې روغتيا وزارت له خپلو نړيوالو شريکانو سره په ګډه ژمن دي چې په ټول افغانستان کې د پوليو د وحشي ويروس مخنيوی وکړي. هڅه کېږي د پوليو واکسين د کمپاينونو... ۳مخ

## تېره مياشت د وسپنې پټلۍ له لارې ۴۱۴۸۸۳ ټنه انتقالات شوي

د ټولګټو وزارت وايي چې د روان کال د سلواغې مياشتې له پيل څخه تر پايه پورې، د هېواد د وسپنې پټلۍ له لارې ۴۱۴ زره ۸۸۳ متريک ټنه انتقالات ترسره شوي دي.



د ټولګټو وزارت د رسنيز دفتر د معلوماتو له مخې؛ په ياده موده کې د حيرتان وسپنې پټلۍ له لارې ۳۲۸ زره ۹۷۰ ټنه، د آقينې د وسپنې پټلۍ له لارې ۲۱ زره ۹۵۹ ټنه، د تورغونډۍ د وسپنې پټلۍ له لارې ۵۵ زره ۵۳۶ ټنه، د خواف – هرات د وسپنې پټلۍ له لارې ۸۴۱۸ ټنه چې ټولټال ۳۷۸ زره ۱۵۶ ټنه نفتي او نور توکي دي؛ ... ۳مخ

## لغمان کې د يو سړک د جوړولو چارې پيل شوې

د لغمان ځايي مسئولين وايي، چې د لومړي ځل لپاره د ياد ولايت د الېشنګ ولسوالۍ فوهين درې ته د سړک جوړولو چارې پيل شوې دي.دغه ۵ کيلو متره سړک د سيمې د اوسېدونکو او د موسسو په مالي ملاتړ د ۲.۵ ميليونو افغانيو په لګښت پيل شوي چې په نږدې راتلونکي کې به يې چارې بشپړې شي.ورته مهال د سيمې اوسېدونکي وايي ، چې له دې وړاندې د سړک د نشتون له امله ... ۳مخ

## د راستنېدونکو او داخلي بېځايه شويو د ملاتړ په موخه د ۶ ميليونو ډالرو په ارزښت تړون لاسليک شو



کابل کې د جاپان سفير او د کډوالو په چارو کې د ملګرو ملتونو د عالي کمېشنرۍ مشر، افغانستان ته د راستنېدونکو او داخلي بېځايه شويو د ملاتړ په موخه د شپږ ميليونو ډالرو په ارزښت يو نوی تړون لاسليک کړ.کابل کې د جاپان سفير تاکايوشي کروميا او د کډوالو په چارو کې د ملګرو ملتونو د عالي کمېشنرۍ... ۳مخ

## کابل ښاريان د انټرنېټ له لوړې بيې شکايت کوي

د کابل ښار اوسېدونکي د انټرنېټي کڅوړو د بيو له لوړوالي شکايت لري.دوی د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت له مسئولينو غواړي ،چې د انټرنېټ بيې راکمې کړي.شعيب، چې د کابل يو اوسېدونکی دی، وايي: (( د انټرنېټ بيه لوړه شوې او بايد يو څه راټيټه شي، ځکه د خلکو اقتصادي وضعيت کمزورې دی. که قيمت ټيټ شي، د انټرنېټ کارونه به زيات شي.)) عبدالمالک، چې د کابل بل اوسېدونکی دی، وايي: (( په نورو هېوادونو کې انټرنېټ ارزانه ... ۳مخ






# د تېرې فاسدې ادارې د ناکامو چارواکو هڅې؛ حقیقت که خیال؟

د افغانستان د تېرې ادارې ځینې پخواني چارواکي، چې د په اصطلاح جمهوریت تر نامه لاندې يې واکمني کړې وه، وخت په وخت د بهرنیو هېوادونو په پلازمېنو کې راټولېږي او د اوسني نظام د بدلون نارې وهي. دوی د خپلو لوېدیځو ملاتړو لاسنیوي ته سترګې په لاره دي، خو دا هڅې، چې نه يې عملي بنسټ شته او نه د افغان ملت ملاتړ لري، یوازې سیاسي تبلیغات ښکاري.

تېر په اصطلاح د جمهوریت نظام، چې شل کاله يې په افغانستان کې دوام وکړ، د فساد، بې‌عدالتۍ، ناامنۍ او د بهرنیو هېوادونو له لوري د مستقیمې مداخلې ښکار و. همدغه چارواکي، چې نن د نظام د بدلون شعارونه ورکوي، هغه مهال يې د هېواد د ثبات، پرمختګ او خپلواکۍ پر ځای شخصي ګټو، ډلو ټپلو جوړولو او قومي او سمتي سیاستونو ته لومړیتوب ورکاوه. د دوی حکومت د خلکو له ملاتړه پرته، یوازې د بهرنیو ځواکونو په سیوري کې روان و او کله چې بهرنی ملاتړ پای ته ورسېد، نظام يې هم له منځه ولاړ.

لوېدیځ، چې یو وخت يې دا سیاستوال واک ته رسول او ورسره يې همکاري درلوده، اوس د دوی له سیاسي شعارونو او بې‌ځایه هڅو ستړی ښکاري. د نړیوالو سیاستونو واقعیت دا دی، چې هېڅ هېواد خپلې ګټې د تل لپاره د ناکامو سیاستوالو پر سر نه قرباني کوي. همدا علت دی، چې د لوېدیځ هېوادونو د بهرنیو چارو استازو تر اوسه د دې سیاسي مجلسونو د ملاتړ څرګندونه نه ده کړې.

له بله اړخه، افغان ملت هم د دوی امتحان لیدلی دی. عام ولس د تېرو شلو کلونو د فاسد نظام کړنې نه دي هېرې کړې. د دې پر ځای، چې ملت د دوی خبرو ته غوږ ونیسي، د افغانستان اسلامي امارت ته د یوه واقعیت په سترګه ګوري او هڅه کوي، چې د داخلي ثبات، اقتصادي پرمختګ او ملي خپلواکۍ لپاره کار وکړي.

د بهرنیو هېوادونو په غونډو کې د شعارونو ورکول او د نظام د بدلون خبرې کول، هغه سیاست نه دی، چې افغان ملت يې بیا وزغمي. دا پخواني سیاستوال، چې د بهرنیو ملاتړ ته تږي دي، باید ومني چې سیاست یوازې د قدرت ترلاسه کولو لوبه نه ده، بلکې د ملت باور ته هم اړتیا لري، چې دوی له لاسه ورکړی. اوسنی واقعیت دا دی، چې افغانستان سیاسي ثبات، اقتصادي پرمختګ او بین‌الافغاني تفاهم ته اړتیا لري، نه د ناکامو سیاستوالو د واک ته رسېدو بلې هڅې ته.

# ای مؤمنانو! د رحمت، مغفرت او نجات میاشت دروازې ټکوي!

محمد قاسم عزام

رمضان المبارک هغه مبارکه میاشت ده، چې د برکتونو، خیر، رحمت، مغفرت او نجات زېری له ځان سره راوړي. دا میاشت د الهي کرم ځانګړې نښه ده، چې الله تعالی د خپلو بندګانو لپاره ټاکلې، څو له خپل خالق سره خپله رابطه ټینګه کړي، د خپلو ګناهونو لپاره استغفار او د نیکو اعمالو تمرین وکړي. دا میاشت له دې پیغام سره راځي، چې الله تعالی د ښېګنې دروازې خلاصې کړي، د شیطان وسوسې يې کمزورې کړي او انسان ته يې د نېکمرغۍ یو نوی فرصت ورکړی. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي، ژباړه:

یعنې: ((کله چې د رمضان میاشت راشي، د جنت دروازې خلاصېږي، د دوزخ دروازې بندېږي او شیطانان ترل کېږي.)) دا حدیث د دې میاشتې د عظمت او برکت ښکاره دلیل دی.

رمضان یوازې د لوږې او تندې زغمل نه دي، بلکې د ځان اصلاح، صبر، تقوا او د نفس د تزکیې میاشت ده. دا هغه فرصت دی، چې انسان خپل روحاني قوت پیاوړی کړي، زړونه له نفاق، کینې او کبر څخه پاک کړي او د صدق، اخلاص او خیر د لارې لاروی شي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي، ژباړه: (بخاري)

((چا چې دروغ ویل او د دروغو عمل پرې نه ښود، نو الله ته اړتیا نه لري دې ته چې هغه یوازې خوراک او څښاک پرېږدي.))

دا حدیث څرګندوي، چې روژه یوازې فزیکي عبادت نه دی، دا د اخلاقو او روح د تزکیې یوه پروسه ده. که څوک دروغ، غیبت، خیانت، بې‌عدالتي او ظلم ته دوام ورکوي، د هغه روژه نه ده، بلکې یوازې لوږه او تنده ده. رسول الله صلی الله علیه وسلم د روژې اصل روح دا بیان کړی، چې انسان باید د خپلې ژبې، فکر او عمل کنټرول وکړي.

په یوه بل حدیث کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي، ژباړه:

یعنې: (( څه ډېر روژه‌نیوونکي داسې دي، چې د خپلې روژې له امله يې یوازې لوږه په برخه کېږي او ډېر ولاړ عبادت کوونکي دي، چې یوازې بې‌خوبي ورته رسېږي.))

دا حدیث روښانه کوي، چې روژه یوازې د ظاهري لوږې او تندې نوم نه دی، یو روحاني سفر دی چې د تقوا، صداقت او اخلاص په رڼا کې ترسره کېږي. که یو انسان له خوراک او څښاک نه ځان ساتي، خو د ژبې، سترګو، غوږونو او زړه کنټرول نه کوي، د روژې اصلي مفهوم يې نه دی درک کړی.

ابن القیم رحمه الله فرمایي: « روژه یوازې دا نه ده، چې انسان له خوراک او څښاکه ځان منع کړي، روژه له ټولو ګناهونو، شهوتونو، او نفساني خواهشاتو ځان ساتل دي.»

د روژې دا روحاني اړخ دا مانا لري، چې یو روژه‌نیوونکی انسان باید خپلو عملونو ته ژوره کتنه وکړي، د نیت اصلاح وکړي، خپل اخلاق ښایسته کړي او د ګناهونو د پرېښودو کلک عزم وکړي.

په حقیقت کې، روژه د نفس د تزکیې یوه ستره وسیله ده، چې انسان ته فرصت ورکوي، څو د خپل رب تقرب ته ځان ورسوي، صبر، تواضع او اخلاص خپل کړي او د خپلو ګناهونو بښنه وغواړي.

رمضان، د قرآن میاشت

رمضان هغه مبارکه میاشت ده چې الله تعالی پکې قرآن کریم نازل کړ. قرآن د انسانیت لپاره د هدایت یوه ستره سرچینه ده، چې د دې میاشتې په رڼا کې يې ځانګړې پاملرنه زیاته شوې ده. قرآن په دې میاشت کې د هدایت او فرقان (د حق او باطل د بېلولو) په توګه نازل شو او دا د مسلمانانو لپاره یوه پراخه لاره ده چې د هغې له مخې خپل ژوند تنظیم کړي.




د رمضان په میاشت کې صحابه کرامو د قرآنکریم تلاوت ته ځانګړې پاملرنه کوله. د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه په شان عظیم صحابي به په رمضان کې قرآنکریم ختماوه، ترڅو د دې مبارکې میاشتې برکات ترلاسه کړي. همدارنګه، امام شافعي رحمه الله هم د رمضان په میاشت کې پوره قرآنکریم تلاوتاوه او دا د عبادت یوه ځانګړې لاره بلل کېده چې د زړه سکون او روحاني پیاوړتیا ته زمینه برابره کړي.

د دې میاشتې له برکته باید هر مسلمان له قرآنکریم سره خپل تړاو تازه کړي او د هغه تلاوت ته ځانګړې پاملرنه وکړي. دا نه یوازې د روحاني پرمختګ لامل کېږي، بلکې د انسان د ټولنیز، اخلاقي او روحاني ژوند لپاره یو بشپړ لارښود دی.

رمضان؛ د دعا او استغفار میاشت

رمضان د دعاګانو د قبلېدو میاشتې په توګه ځانګړی مقام لري. دا هغه وخت دی چې الله تعالی خپلو بندګانو ته د خپلو دعاګانو د قبلېدو پراخه دروازه پرانیزي. په دې مبارکه میاشت کې، هر مسلمان ته دا فرصت برابرېږي چې له خپل رب څخه د مغفرت او رحمت غوښتنه وکړي. رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي چې روژه‌دار ته د روژه ماتي پر مهال یوه داسې دعا ورکړل شوې چې نه ردېږي. دا د دې میاشتې یو ځانګړی برکت دی، چې د روژې ختمېدو سره د انسان دعاګانې مستجابیږي. د روژه ماتي پر مهال د انسان زړه د الله تعالی په حضور کې ډک وي او دعا يې له زړه څخه راځي، چې الله تعالی يې حتماً قبلوي.

د دې میاشتې په هره لحظه کې باید موږ خپلې دعاګانې، استغفار، او د الله تعالی رحمت ته لاس اوږد کړو. په ځانګړې توګه د سحري او روژه‌ماتي پر مهال، دعاګانې ډېر ارزښت لري. په دې وختونو کې باید موږ له الله تعالی د دین او دنیا نېکمرغي، بښنه، برکت او د جنت اساني وغواړو. دا موږ ته یو مهم فرصت دی چې خپل روح پاک کړو او له رب سره خپله اړیکه ټینګه کړو.

رمضان؛ د صدقې، زکات او خیر میاشت

په رمضان کې د نېکۍ ثواب څو چنده زیاتېږي او دا میاشت د عبادت، سخاوت او خیرات لپاره ځانګړې فضیلت لري. د رسول الله صلی الله علیه وسلم عادت و چې په رمضان کې به يې ډېرې صدقې، زکات او خیراتونه ورکول. د رمضان مبارکه میاشت د مسلمانانو لپاره یو غوره فرصت دی چې اعمالو ته زیاته توجه وکړي او د ټولنې په پرمختګ کې ونډه واخلي او زیات اجرونه وګټي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، ژباړه: (بخاري)

((رسول الله صلی الله علیه وسلم له ټولو سخي و، خو د رمضان په میاشت کې يې سخاوت له ټولو زیات و.))

دا حدیث ښيي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د رمضان په میاشت کې خپل سخاوت ته ځانګړې پاملرنه کوله. هغه به د دې میاشتې په جریان کې خپلې ټولې مرستې بېوزلو، مسکینانو، یتیمانو او اړمنو ته وراندې کولې. د دې میاشتې غوره فضیلت دا دی، چې مسلمانان هڅول کېږي چې د خپل مال، علم او عمل له لارې له نورو سره مرسته وکړي.

دا میاشت د ټولو هغو خلکو لپاره یوه ځانګړې موقع ده چې د خپل سخاوت او نورو ته د خدمت کولو له لارې نه یوازې د دنیا بلکې د آخرت برکتونه ترلاسه کړي.

د رمضان په میاشت کې د سخاوت زیاتولو سره، مسلمانان د ټولنې په ښې کولو او د خپل ځان په روحاني پرمختګ کې مرسته کوي، او دا د هر مسلمان لپاره د نېکۍ یوه ځانګړې لاره ده.

رمضان، د توبې او د جنت د دروازو د خلاصېدو میاشت ده.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي، ژباړه: (بخاري، مسلم)

یعنې: ((څوک چې د رمضان روژه د ایمان او اجر له امید سره ونیسي، د هغه ټول پخواني...

۳مخ

# کابل او ولایتونه په بدلون کې؛ سړکونه د پرمختګ اساس

څواک یوسفزی

کله چې اسلامي امارت د الله تعالی ﷻ په نصرت او د مجاهد ولس په ملاتړ سره، د ناټو او امریکا په شان «پرمختللو» قوتونو ته داسې تاریخي او شرموونکې ماته ورکړه چې د هغوی جنرالان يې اوس هم په یادولو خوبونهویني، نو لوېدیځوال حیران پاتې شول.

دوی فکر کاوه چې افغانستان به بېرته تیارو ته لاړ شي، خلک به په پښو مزلونه کوي، کاروانونه به د صحراګانو له کنډو کپرو لارې تېرېږي او افغانستان به د پرمختګ لاره هېره کړي. خو دا خیالونه یوازې د هغوی د زړونو د تسلۍ لپاره وو، ځکه چې اسلامي امارت نه یوازې دا چې د هېواد د ازادۍ بیرغ جګ کړ، بلکې د ابادۍ لپاره يې هم متې را بډوهلې.

کله چې د جګړې د لوګیو له منځه د آزادۍ لمر راوخوت، اسلامي امارت د هېواد د پرمختګ لپاره بنسټیز کارونه پیل کړل او له مهمو برخو څخه یې یو هم د سړکونو، پلونو او لویو لارو رغونه وه. دا هغه څه وو چې کلونه د خلکو لپاره یوازې یو خیال و، ځکه چې د اشغالګرو او د هغوی د اجیرانو په وخت کې یوازې ژمنې کېدلې، خو عملي کار نه و.

اسلامي امارت، چې د ولس واقعي استازی دی، دا ژمنې يې په عمل کې ثابتې کړې.

کابل ته نوې بڼه ورکړل شوه؛ هغه کنډ او کپر سړکونه چې پخوا به پکې ساعتونه ساعتونه موټرونه بند پاتې کېدل، اوس رغول شوي او ښاري نظم ته پاملرنه شوې. د کابل-کندهار لویه لاره، چې د هېواد د جنوبي او مرکزي برخو د سوداګرۍ او تګ راتګ شریان دی، ترمیم او پراخه شوه، ترڅو مسافرین په امن او آرامه سفر وکړي. سالنګ، چې د شمال او جنوب ترمنځ د اقتصادي وینې اصلي رګ دی، رغول شوی او لا نور هم پراخېږي. د کابل-جلال‌اباد او کابل-هرات لارې، چې د هېواد د سوداګرۍ لپاره حیاتي ارزښت لري، یا جوړې شوي، یا د رغونې چارې پرې روانې دي.

د سړکونو رغونه یوازې د اسانتیا لپاره نه ده؛ دا د اقتصاد د پیاوړتیا، د کرنیزو محصولاتو مارکیټ ته د رسولو، د سوداګرۍ د ودې او د ټولنیز یووالي یوه اساسي وسیله ده. که یو وخت افغانستان ته پردیو د «شاته پاتې هېواد» نوم ورکاوه، نو اوس حقیقت دا دی چې هېواد په چټکۍ سره د پرمختګ پر لور روان دی.

که لوېدیځوال حیران دي چې دا ولس څنګه خپل هېواد جوړوي، نو دوی ته غوره ده چې خپل تېر «اشغال» هېر کړي. اوس د افغانستان د ودانولو وخت دی او دا سړکونه د دې پرمختګ یوه ژوندۍ بېلګه ده.

اسلامي امارت نه یوازې د هېواد د ساتنې مبارزه وګټله، بلکې د ابادۍ او پرمختګ معرکه يې هم پیل کړې او دا معرکه به د هیواد د بشپړې بیا رغونې، اقتصادي ثبات او خپلواک اقتصادي نظام په بریا ختمېږي!

کله چې اسلامي امارت په ۲۰۲۱ کال کې واک ته ورسید، د ترانسپورټي زیربناوو پراختیا ته ځانګړې پاملرنه وشوه او دغه پروژې نه یوازې د ترانسپورت په برخه کې پرمختګونه رامنځته کوي، بلکې د اقتصادي، ټولنیزو، فرهنګي او اداري فعالیتونو د پراختیا سبب هم ګرځي. د افغانستان د ملي شتمنۍ جوړول، د هېواد د سیمو ترمنځ د اړیکو پراختیا، د تجارت او کرنې ودې ته لاره هوارول او د ټول هېواد لپاره د اقتصادي وضعیت د باثباتۍ لپاره حیاتي ارزښت لري. د کابل ښار د ترانسپورټي زیربنا پراختیا ته ځانګړې اهمیت ورکول شوی، ځکه چې کابل د هېواد اقتصادي، اداري او سوداګریز مرکز دی. د دې ښار د ترانسپورټي پروژو پرمختګ د هېواد د ترانسپورټي سیستم د پیاوړتیا لپاره یو ستر ګام ګڼل کېږي.

د کابل ښار د ترانسپورټي زیربنا د پراختیا پروژې نه یوازې د خلکو د ژوند اسانتیاوې زیاتوي، بلکې د تجارت، صنعت او کرنې په برخه کې هم بنسټیز بدلونونه راولي. د کابل ښاروالۍ له خوا د ۱۲۵.۸۷ کیلومتره سړکونو جوړول چې د کانکریټ، قیر او تیږو په وسیله فرش شوي، د کابل ښار دننه د تګ راتګ اسانتیاوې برابروي. دغه سړکونه د ښار د ترانسپورټي نظام د پیاوړتیا لپاره یوه مهمه پروژه ده. د وزیر محمد اکبرخان سیمې کې د ۱۳، ۱۴ او ۱۵ نمبر سړکونو جوړول چې د ۳۴ میلیونو افغانیو په لګښت يې چارې روانې دي، د ښار د ترانسپورټي شبکې د پیاوړتیا لپاره یوه مهمه پروژه ده. د کابل ښار د اوولسمې ناحیې په چوکاټ کې هم دوه فرعي سړکونه د ۱۶ میلیونه افغانیو په لګښت جوړ شوي دي او دې ته ورته په نورو سیمو کې سړکونه جوړ شوي دي چې دا ټولې پروژې د خلکو د تګ راتګ د اسانتیا لپاره بنسټیزې دي او د کابل د ترانسپورټي سیستم د پیاوړتیا لپاره مهم رول لوبوي.

د کابل-کندهار لویه لاره، چې د هېواد د ترانسپورټي شاهرګ په توګه ګڼل کېږي، د دواړو ښارونو ترمنځ د ترانسپورټي اړیکو د پراختیا لپاره حیاتي اهمیت لري. دغه لاره نه یوازې د سوداګرۍ او مسافرو لپاره اسانتیاوې برابروي، بلکې د کرنیزو محصولاتو بازارونو ته د لېږدونې لاره هم چټکوي. د کابل-کندهار لویه لاره د هېواد د ترانسپورټي زیربنا یوه بنسټیزه برخه ګرځېدلې چې د اقتصادي او ټولنیزو اړیکو پراختیا کې مهم رول لوبوي. د دې لویې لارې د رغونې او پراختیا له لارې افغانستان د خپل ترانسپورټي سیستم د پیاوړتیا لپاره ستر ګامونه اخیستي دي، چې په پایله کې يې د هېواد د داخلي او نړیوالې سوداګرۍ لپاره ستر فرصتونه رامنځته شوي. دغه لاره د هېواد د بېلابېلو برخو ترمنځ د مالونو او خدماتو د ترانسپورت لپاره یوه مهمه لاره ده او د تجارتي فعالیتونو او بازارونو ترمنځ اړیکې نورې هم نږدې کوي. همدارنګه، د کابل-کندهار لویه لاره د هېواد د امنیتي او ټولنیزو اړیکو د پراختیا لپاره هم مثبت اثر لري. د دغې لارې په پراختیا سره د هېواد بېلابېلو سیمو ته د تګ راتګ اسانتیاوې زیاتېږي، چې په دې سره د سیمې خلکو ته د اقتصادي او ټولنیزو خدماتو رسېدل زیاتوي او د هېواد د امنیتي وضعې ښې کولو کې هم مرسته کوي.

د کابل ښار د شمال او جنوب ترمنځ د ترانسپورټي اړیکو لپاره د سالنګ د تونلونو پروژه یوه له هغو پروژو څخه ده چې د هېواد د ترانسپورټي شاهرګونو برخه بلل کېږي. د کابل-بغلان-کندز لاره د کوهستاني سیمو له لارې تېرېږي، چې د واورې، یخنۍ او نورو طبیعي خنډونو پر مهال د تګ راتګ اسانتیا برابروي. دغه تونلونه د هېواد د شمال او جنوب ترمنځ د اړیکو د پراختیا لپاره حیاتي اهمیت لري، ځکه چې دغه تونل د ځمکنیو اړیکو د اسانه کولو ترڅنګ د هېواد د اقتصادي فعالیتونو د پراختیا لپاره هم ستر فرصتونه رامنځته کوي. د سالنګ تونل جوړول د افغانستان په ترانسپورټي زیربناوو کې یو ستر پرمختګ ګڼل کېږي، ځکه چې دا د هېواد د اقتصادي، سوداګریزو او کرنیزو محصولاتو د لېږدونې لپاره چټکه لاره برابروي. د دې تونل له لارې، افغانستان کولای شي خپل سوداګریز، صنعتي او کرنیز تولیدات له ډېرو اسانتیاوو سره بازارونو ته ورسوي او دغه پروسه د هېواد په اقتصادي وده کې...

۳مخ

# افغان اعلانات

### اطلاعیه دعوت به داوطلبی

شرکت انکشاف ملی در نظر دارد، تا مقدار (۲۱۰،۰۰۰ دو صدو ده هزار تن) سمنت تولیدی فابریکه سمنت غوری سال ۱۴۰۴ خویش را از طریق مزایده به فروش برساند. اشخاصی که خواهان اشتراک در پروسه مزایده باشد، می توانند شرطنامه فروش سمنت فوق الذکر را بصورت هارد کاپی از دفتر مرکزی شرکت انکشاف ملی واقع قصبه، ناحیه ۱۵، کابل دریافت نموده و آفرهای خویش را از تاریخ نشر اعلان الی روز (شنبه) مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۵ به آمریت روابط عامه شرکت انکشاف ملی تسلیم نمایند، آفرهای ناوقت رسیده انترنیتی قابل پذیرش نمی باشند.

جلسه مزایده به روز شنبه ساعت ۱۰:۰۰ قبل ازظهر مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۵ در تالار جلسات این شرکت تدویر میگردد.۹۴۸۱

### د فعالیت جواز د ورکړې اعلان

د عدلیې وزارت د انسجام لوی ریاست د تولنو چارو ریاست په پام کی لری چی د ټولنی دلانسه تنظیم په موخه د اتحادیو او خیریه بنستونو له کړنلاری سره سم، اتحادیه بنیاد های خیریه ولایت کابل ته د فعالیت جواز ورکړی

دیاد جواز اخیستلو لپاره احسان الله نوروز د محمد نوروز زوی، د نورستان ولایت مرکز ولسوالی اصلی اود کابل ولایت ۴ ناحیې فعلی اوسیدونکی د رییس، اد عبدالولی پشتونیار د جمعه خان زوی، د کندز ولایت مرکز ولسوالی اصلی او د کابل ولایت ۱۲ ناحیې فعلی اوسیدونکی د مرستیال په توګه عارض شوی که پر یادو اشخاصو دصنف اړوند کوم څوک نیوکه لری د اعلان له نیتی څخه تر لسو ورځو پوری د عدلیې وزارت یاد ریاست ته خپل شکایت له اسنادو او شواهد و سره یوځای په لیکلی بڼه وړاندی کړی له یادی نیټې وروسته به نوموړو اشخاصوته د فعالیت جواز صادریږی چی دجواز د صدور له نیټې څخه د جوار ترنهایی نیتی پوری په یادو اشخاصو څوک د شکایت حق نه لری.۹۴۸۰

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت آصف غفور زاده لمتید یک عراده موتر پلیت ۱۷۱۷-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبدالحفیظ فرزند عبدالرحمن بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۴۸۳

### اطلاعیه فسخ جواز رهنمای معاملات

اسامی محترم الهام الدین فرزند محمد فدا ولدیت عبدالوهاب دارنده جواز نمبر (۵۰۵۱) مورخ ۱۴۰۲/۲/۳۰ متصدی رهنمای معاملات (الهام برادران) واقع ناحیه (۱۵) شاروالی کابل خواهان فسخ جواز خویش گردیده که بعد از نشر اعلان رهنمای مذکور فاقد اعتبار قانونی بوده هر گاه ادارات دولتی و اشخاص انفرادی بالای موصوف ادعای حقوقی به ارتباط فعالیت جواز مذکور داشته باشند بعد از نشر اعلان الی مدت یک هفته به ریاست عمومی انسجام، وزارت عدلیه اطلاع دهند.۹۴۶۶

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه کارت مجوز حمل سلاح دارای شماره ۱۷۲۱۴۲۲۳ نوع کلاشینکوف مربوط محترم حاجی سلیم فرزند محمد حکیم مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند.۹۴۷۶

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت ملت کارپریشن لمتید یک عراده موتر پلیت ۶۴۱۱۳-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای سید داود فرزند سید رزاق بفروش رسانیده است. بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۴۷۵

### اطلاعیه مفقودی

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم نوید الله فرزند تاج محمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۴۶۴

### اطلاعیه مفقودی

یک جلد کتابچه صفایی خانه واقع ناحیه ۸ به اسم احمد فرید فرزند عبدالرحیم مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۴۷۲

### اطلاعیه دعوت به داوطلبی

ریاست معادن ولایت کابل در نظر دارد به خاطر عقد قرار داد معادن مواد ساختمانی ساحات ذیل را به مدت ۲ سال به عقد قرار داد بدهد.

| شمار | ولایت | ولسوالی | نام ساحه | نوعیت مواد | مساحت ساحه |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | کابل | ناحیه ۲۱ | تپه مروارید | سنگ تعمیراتی | ۷۰۹،۱ مترمربع |
| ۲ | کابل | بگرامی | کوه کمری | جغل خاکدار | ۴۵۵۸،۴ متر مربع |

تمام داوطلبان می توانند به خاطر اشتراک درخواستی های خود را از تاریخ ۱۴۰۳/۱۲/۶ الی ۱۴۰۳/۱۲/۱۸ به ریاست معادن ولایت کابل تحویل نمایند و فورمه داوطلبی را از این ریاست دریافت نمایند.

نوت : فیس اجازه نامه مبلغ (۱۵۰۰۰) پانزده هزار افغانی، ضمانت محیط زیستی (۴۰۰۰۰) چهل هزار افغانی و ضمانت حسن اجراء به اندازه یک ربع می باشد.۹۴۷۳

---

### ای مؤمنانو! د رحمت ...

ګناهونه بښل کېږي.))

لــه همدې امله، دا میاشت د توبې، د ګناهونو د بښنې او د الله تعالی د رحمت ترلاسه کولو غوره فرصت دی. هر مؤمن ته پکار ده، چې له دې موقع نه اعظمي ګټه واخلي او د خدای پاک د بښنې دروازې وټکوي.

له رمضان څخه د غافل انسان بدبختي

د دې میاشتي فضیلت دومره زیات دی، چې که څوک پکې د اللــه تعالی عبادت تـه متوجه نه شي، نو د هغـه لپاره دا لویه بدبختي ده. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي، ژباړه: (ترمزي)

یعني: ((هغه بنده دې برباد شي، چې رمضان ته ورسېږي او بیا هم د هغه ګناهونه و نه بښل شي.))

نو راځئ چې دا مبارکه میاشت له لاسه ور نه کړو. دا د ځان د اصلاح، د روح صفا کولو، د جنت ترلاسه کولو او د ګناهونو د بښلو میاشت ده.

رمضان د الله تعالی د ځانګړي رحمت موسم دی، چې پکې د مغفرت، برکت او نېکمرغۍ دروازې پرانیستل شوې دي. څوک چې دا میاشت درک کړي، خو بیا هم د ځان اصلاح ته پام ونه کړي، هغه ډېر محروم او بدبخته دی. دا زموږ لپاره یو زرین چانس دی، چې د دنیا او آخرت بریا ترلاسه کړو.

راځئ چې د دې میاشتي استقبال د اخلاص، ایمان او د نېکو اعمالو له پیاوړي کولو سره وکړو، قرآن ته مراجعه وکړو، د روژې حکمتونه خپل کړو او د الله تعالی دروازې وټکوو، ترڅو زموږ برخلیک رڼا شي، زړونه مو روښانه شي او د دنیا او آخرت فلاح مو په نصیب شي.

### کابل او ولایتونه ...

مثبت بدلون راوړي. په ځانګړي توګه، د دې تونل له لارې د افغانانو لپاره چې په شمالي او جنوبي برخو کې ژوند کوي، تګ راتګ اسانه کېږي او د سوداګریزو اړیکو پراختیا سره د هېواد د ټولو سیمو تر منځ همغږي زیاتېږي.

د کابل ښار ترانسپورتي زیربناوې د نورو ولایتونو لپاره هم پراختیا مومي. د کابل-لوګر، کابل-کاپیسا، کابل-کندهار، کابل-جلال اباد دوهم لاین سړک او د نورو ولایتونو د ترانسپورتي زیربناوو د پراختیا په پروژو کې د پام وړ پرمختګونه شوي دي. د دې سړکونو جوړول د ترانسپورتي اړیکو د پراختیا لپاره حیاتي رول لري. دغه سړکونه د کرنیزو محصولاتو، سوداګریزو توکو او خدماتو بازارونو ته د لاسرسي اسانتیا برابروي. له دې سره، د دې سړکونو جوړول د اقتصادي، ټولنیزو، فرهنګي او اداري فعالیتونو د پراختیا لپاره هم اساسي ګام ګڼل کېږي. دغه پروژې نه یوازې د تګ راتګ اسانتیاوې زیاتوي، بلکې د ټول هېواد د ترانسپورتي شبکې د پیاوړتیا لپاره هم ستر ګام دی. د کابل-کاپیسا، کابل-لوګر، کابل-غزني او نورو لارو جوړول د کرنیزو او سوداګریزو فعالیتونو د پراختیا سبب ګرځېدلی، ځکه چې د دې لارو په پراختیا سره به د خلکو لپاره د روزګار فرصتونه، د تعلیم او روغتیا خدماتو ته لاسرسي او بازارونو ته د محصولاتو د لېږدونې اسانتیاوې زیاتې شي.

د سړکونو پراختیا نه یوازې د ترانسپورتي اسانتیاوو د زیاتولو لپاره اړینه ده، بلکې د اقتصادي پرمختګ، د کرنیزو محصولاتو بازارونو ته د انتقال لپاره، د ټولنیز پرمختګ او د ټولنیزو اړیکو د پراختیا لپاره هم یو حیاتي اړخ دی. دغه سړکونه د کرنیزو محصولاتو او صنعتي توکو بازارونو ته د انتقال په لړ کې مهم رول لوبوي. کله چې خلک په آسانۍ سره د ښاري او کلیوالو سیمو ترمنځ تګ راتګ کولی شي، دا د ټولنیزې همغږۍ، د امنیت د ښه کولو او د پرمختګ لپاره نوې لارې پرانیزي. دغه سړکونه د زراعتي او سوداګریزې ښنبې د تبادلې لپاره یوه اسانه لاره برابروي او د ټولنې د ټولو اړخونو لپاره د اقتصادي همغږۍ سبب ګرځي.

په پایله کې د اسلامي امارت تر واک لاندې د افغانستان د ترانسپورتي زیربناوو پراختیا یوازې د سړکونو، پلونو او تونلونو رغونه نه ده، بلکې دا د اقتصادي، ټولنیز او امنیتي ثبات د بنسټ ډبره هم ده. د سړکونو جوړول او رغول د هېواد د سوداګرۍ، کرنې، صنعت او خدماتو د ودې لپاره یوه حیاتي اړتیا وه، چې اسلامي امارت ورته جدي پاملرنه کړې ده. د کابل، کندهار، سالنګ او نورو مهمو لارو پراختیا نه یوازې د مسافرو لپاره اسانتیاوې برابرې کړې، بلکې د سوداګرۍ د ودې، د کرنیزو محصولاتو د بازار ته رسولو او د ټولنیز یووالي د پیاوړتیا سبب شوې ده.

د سړکونو او لویو لارو رغونه د افغانستان د اقتصادي خپلواکۍ، د خلکو د ژوند د اسانتیا او د ټولنیز ثبات لپاره یو اساسي ګام دی. لـه دې سره نـه یوازې دا چې د هېواد دننه تګ راتګ اسانه شو، بلکې د سیمې هېوادونو سره د سوداګریزو اړیکو پراخېدو ته هم لاره هواره شوه. د دې ټولو پرمختګونو پایله دا ده چې افغانستان د ځان بسیاینې پر لور روان دی او د دې هېواد خلک به ډېر ژر د داسې یو نظام شاهدان وي چې په هر اړخیزه توګه خپل اقتصادي، ترانسپورتي او ټولنیز ثبات تأمین کړي. د اسلامي امارت دا هڅې نه یوازې د اوسني نسل لپاره، بلکې د راتلونکو نسلونو لپاره هم د یوې روښانه راتلونکې زیری ورکوي. د یو آباد او سوکاله افغانستان په هیله.

### د اوبو نړیوال کنفرانس ...

څېړنې او عملي تجربې وړاندې کړي. تر څو د حللارو په موندلو کې تړې کار واخیستل شي.موږ له ټولو څېړونکو او متخصصینو غوښتنه کوو، چې د خپل علم او تجربې په رڼا کې د اوبو د مدیریت او د اقلیمي بدلون د اغېزو کمولو په برخه کې د مؤثرو تګلارو او ستراتیژیو په جوړولو کې برخه واخلي.څرنګه چې دغه مهم هدف ته رسېدل د بېلابېلو اړوندو ادارو، پوهنتونونو، تخصصي مراکزو او خصوصي سکتور ترمنځ همکارۍ او همغږۍ غواړي، بناءً پر ټولو اړوندو اړخونو غږ کوو، چې یادې ستونزې تـه د حل پـه موندلو کې خپل ور په غاړه مسئولیتونه ترسره کړي.د همغږۍ او همکارۍ روحیه به د پریکړو د پلي کېدو په برخه کې مرسته وکړي او د ستونزو د حل په برخه کـې به ګټوره واقع شي.په پای کې د کنفرانس ګډونوالو تـه ډاډ ورکوم، چې اسلامي امارت د هر هغه اقدام کلک ملاتړ کوي، چې زموږ د مؤمن ولس ګټې او پرمختګ ورسره تړلې وي.دغه راز له ټولو هغو مسئولینو مننه کوم چې دغـه مهم کنفرانس یې رابللی، د کنفرانس د تدویر لپاره یې امکانات برابر کړي او یـا یې دلته ګډون کـړی دی.الله تعالی دې د دوی هڅـې په خپل دربار کې قبولې کړي.

### له هرې ممکنې لارې د اوبو ...

که څـه هم اوبه نـوې کېدونکې طبیعي سرچینه ده، خو بیا هم په اوسني نړۍ کې د اقلیمي بدلونونو، د اوبو ککړتیا کچې لوړېدو، د انسانانو زیاتېدونکو اړتیاوو او له اوبو سره د انسانانو د ناسم چلند له امله په جدي توګه د هغو کمښت حس کېږي او په مسلسله توګه د کمېدو په حال کې دي.دې ناوړین د هېوادونو پر خپلمنځي او نړیوالو سیاسي او اقتصادي اړیکو هم منفي اغېزه کړې ده.نوموړي وویل: افغانستان د اوبو پراخې طبیعي سرچینې او زېرمې لري، خو له بده مرغه د هېواد په معاصر تاریخ کې له دغه ستر نعمت سره د بېلابېلو عواملو له امله مسلکي او ملي چلند نه دی شـوی، نو په دې بنسټ اوس زموږ او ستاسې ګډ مسئولیت دی، چې له هرې ممکنې لارې او امکاناتو څخه په استفادې د اوبو د غوره مدیریت لپاره اساسي ګامونه واخلو.پـه همدې موخه د خپل حق له اوبو د ښې استفادې او مدیریت په موخه د افغانستان اسلامي امارت خپلې هڅې کوي، چې یوه بېلګه یې د قوشتیپې کانال کیندل او د ځینو نورو بندونو ترل او رغول دي.د ریاست‌الوزراء اقتصادي مرستیال په پای کې د اوبـو د غوره مدیریت په برخه کې پـروني کنفرانس او دلته د پوهنتونونو د استادانو او د اوبو برخې د متخصصینو له لورې د څېړنیزو مقالو او تجربو شریکول مهم وبلل او هغوی ته یـې د لا زیاتو او دقیقو څېړنو د ترسره کولو سپارښتنه وکړه.د یادونې وړ ده، چې د اوبو نړیوال څېړنیز کنفرانس د لوړو زده کړو وزارت او د کابل پولي تخنیک پوهنتون له لورې په هېواد کې د اوبو د غوره مدیریت، د تر ځمکې لانـدې اوبو د سرچینو د تغذیې، د اوبو د سالمې استفادې او ککړتیا د مخنیوي په موخه د درېیو ورځو لپاره جوړ شـوی دی.

یـاد کنفرانس ته د اړوندو ادارو شمېر مسئولین، د بهرنیو معتبرو پوهنتونونو استادان، د نړیوالو سازمانونو استازي او د اوبو د مدیریت برخې کورنیو او نړیوالو څېړونکو او متخصصینو رابلل شوي چې ۱۳۵ څېړنیزې مقالې به پکې شریکې شي.

### اذربایجان له افغانستان ...

د دوه اړخیزو همکاریو او پرمختګونو یادونه وکړه او زیاتـه یې کړه؛ اذربایجان له افغانستان سره خپلو اړیکو ته ځانګړې اهمیت ورکوي، له همدې امله یې په کابل کې خپل سفارت پرانیست او په آذربایجان کې یې د اسلامي امارت ډیپلوماتان ومنل. په پایکې د اذربایجان سفیر د بهرنیو چارو وزارت لـه ښـې همکارۍ مننـه وکړه او هم دواړو لـورو د دوه اړخیزو اړیکو پر پیاوړتیا او دوام ټینګار وکړ.

### تېره میاشت ۲۴۶۵ بهرنیانو ...

د لیدنـې او پاټي نور یـې د کار په موخه راغلي دي.د یادونې وړ ده، چې د دې اداري د ثبت شـویو ارقامو پر بنسـټ، له ټولو زیات بهـرني وګړي د نیمروز لـه بندر، د هرات هوایـي ډګر او بندرونو، د تورخم، آقینې او حیرتـان بندرونو او د بلخ هوایي ډګر له لارې هېواد ته راغلي دي.

### تېرکال د افغانستان او چین ...

چې د افغانستان او چین تر منځ د سوداګرۍ په برخه کې آسانتیاوې ورته برابرې شوې، خو زیاتوي، چې کـه په چین کې د ویزو د ټیکس په برخه کې یې ستونزې اوارې شي سـوداګرۍ به یـې لا غوړېږي.دغه راز افغان سوداګر له اسلامي امارت څخه غواړي، چې له چین څخه دې افغانستـان ته د کراچۍ بندر له لارې د وارداتو زمینه برابره کړي، تر څو سوداګریز توکي یې په کم وخت او ارزانه بیه را ورسېږي.

### د هېواد په ۱۶ولایتونو کې ...

ترخنګ نـورو بشپړوونکو روغتیایي خدمتونو ته دوام ورکړو څو په ټول هېواد کې د پولیو ناروغۍ ختمه کړو. نو اړینه ده چې دیني علماء، قومي مخور، والدین او د ټولنې نور بانفوذه وګړي په ټول هېواد کې د واکسیناتورانو ملاتړ وکړي او له ټولو څخه غوښتنه کوو چې له دې ناروغۍ سره په مبارزه کې خپل مسئولیت ترسره کړي او د خپلو ماشومانو روغتیا او خوندیتوب ته پاملرنه وکړي، ځکه چې پولیو ویروس د ماشومانو د دایمي فلج (ګوزن) او یا هم د مرګ سبب کېدای شي. دا مهال په هېواد کې د پولیو ویروس شته او د عامې روغتیا وزارت یې پـر وړاندې مبارزې ته بشپړ چمتووالی لري؛ خو له پولیو ناروغۍ سره پـه مبارزه کې د ټولنـې د ټولو وګړو ملاتړ مهـم دی. والدین کولای شي د پولیو واکسین په مرسته کې د خپلو ماشومانو په واکسینولو سره هغوی له دایمي فلج څخه خوندي کړي. قومـي مخور کولای شي د خپلو سیمو خلک وهڅـوي څو هغوی خپل ماشومان واکسین کړي او د پولیو واکسین له ټیمونو سره مرسته وکړي تر څو کمپاین په ښـه توګه پلي شي او له ټولو کورنیو څخه غوښتنه کوي چې له پنځو کلونو کم عمره ټول ماشومان واکسین کړي.زیارمل هوتک

### تېره میاشت د وسپنې پټلۍ ...

هېواد ته وارد شـوي او همدا رنګه، په دې مـوده کې ۳۶ زره ۷۲۷ ټنه تجارتي مالونه چې زیاته برخـه یې وچه مېوه، کینو او د انارو جوس دي؛ صادر او ترانزیټ شـوي دي.

د ټولګټـو وزارت وایي چـې هڅې کوي د لا زیاتـو انتقالاتو لپاره مناسب شرایط چمتو او سـوداګرو ته اړینې آسانتیاوې برابرې کړي.د یادونـې وړ ده چې د روان ۱۴۰۳ مالي کال د مرغومي په میاشت کې، د افغانستان دوسپنې پټلۍ له لارې ۴۰۸ زره ۸۷۶ ټنه انتقالات ترسره شـوي چې له دې جملې ۱۶۹۸ټنه یې صادرات او ترانزیټ وو.

### لغمان کې د یو سړک ...

له ډېـرو ګراوونو سره مـخ وو او د دغه سړک په جوړېدو سره به یې د تګ راتګ په برخه کې شته ستونزې حل شي.د یادونې وړ ده، چې په هېواد کې د اسلامي امارت په بریا سره دغه شـان زیاتـې پروژې پلي شوي او ګټې اخیستنې ته سپارل شوې دي. باختر

### د راستنېدونکو او داخلي ...

مشر عرفات جمال پرون افغانستان ته له راستنېدونکو او داخلي بې‌ځایه شویو سره د مرستې په موخه یو نوې ترون لاسلیک کړ. د دغه هوکړه‌لیک پر بنسټ به، جاپان د کډوالو په چارو کې د ملګرو ملتونو له عالي کمېشنرۍ سره ۶ میلیونه ډالره مرسته وکړي.په همدې حال کې افغانستان کې د کډوالو پــه چارو کې د ملګرو ملتونو د عالي کمېشنرۍ رئیس عرفات جمال وویل، له ګاونډیـو هېوادونو د سلګونو زرو افغانانو راستنېدو، سیمه‌ییزې ټولنې زیانمنې کړې او دوامداره مرستو ته اړتیا لري.ده زیاته کړه چې د جاپان په مالي مرسته به دغه بنسـټ افغانستان کې له ۱۵زره داخلي بې‌ځایه شویو او راستنېدونکو سره مرسته وکړي.

### کابل ښاریان د انترنېټ ...

او باکیفیته دی، خو په افغانستـان کې هم ګران دی او هم کمزوری خدمات لري. زما غوښتنه دا ده، چې بیې راکمې شي.))خو د ګاونډیو او د سیمې په هېوادونو کې سره له دې چې، انترنېټ بې شـه کیفیت لري ډېر ارزانه هـم دی.فیروز آیدین محمدي، چې په ترکیه کې یو افغان کډوال دی، وایي: ((پـه ترکیه کې د ۱ جي‌بي انټرنېټ بیه ۳۵ لیـرې دي، چې نږدې ۱ ډالر یـا ۷۰ تر ۷۳ افغانیو ته رسېږي.)) ملک‌اول شینواری، چې په پاکستـان کې میشت افغان کډوال دی، هم وایي: ((په پاکستان کې انټرنېټ ته لاسرسی ډېر اسـانه دی. د ۲۰۰ جي‌بي او آن تر ۱۵۰۰ جي‌بي انټرنېټ کڅوړې یوازې د ۵۰۰ افغانیو په بیه ترلاسـه کېدای شي.)) له دې سره سـم، د افغانستـان د مخابراتي خدمتونو د تنظیـم اداره یا اترا وایي: دغه اداره هڅـې کـوي ،چې په هېـواد کې د انټرنېټ بیه راټیټـه او ورسره هېوادوالو ته چټک انټرنـېټ وړاندې کړي.د اترا اداري ویاند، جلال‌الدین شمس بیا وایي: ((اترا اداري د مخابـراتي شرکتونـو د عوایدو او لګښتونو له تحلیل وروسته، یوه مشخصه بیـه ټاکلې، چـې د ۲۰۲۵ ز کال له پیله به عملي شي. همداراز، د شرکتونـو ترمنځ سیالي زیاته شـوې او هغوی اوس د خپلو انټرنېټي کڅوړو بیې کمـې کړې، ترڅو زیـات پېرودونکي جـذب کړي.))له دې مخکې د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت په ټول افغانستان کې د نوري فایبر د ۴۸۸ کیلومتـره مـزي د لېږدولو پروژې له تصویبېدو خبر ورکـړی و او همداراز یـې ویلي و، د دې پـروژې چارې په ځینو ولایتونو کې روانې دي او په یو شمېر نورو ولایتونو کې تازه پیل شوې دي.

### راتلونکي کال کې د کابل ...

د خلکو خدمتګاران دي او له دغه ډول پروګرامونـو څخه چې خلک وکولی شي په مستقیم ډول خپلې ستونزې له مسئولینو سره شریکې کړي، هرکلی کوي.همدارنګه نوموړي د کابل ولایت د برښنا د کموالي ستونزې په هکله ډاډ ورکړی، چې د اوبو او انرژۍ وزارت بـه پروګرامونه تر لاس لاندې نیولي دي.ملا عبداللطیف منصور ویلي، چـې په دې برخه کـې د نغلو د ۱۰ مېګاواټه لمریزې برښنا پروژه بشپړه او له شبکې سره نښلول شـوې او دغه‌راز له ترکمنستان څخه تر ارغندۍ پورې د لېږد مزي پروژې چارې هم په ښه توګه رواني دي، چې په بشپړېدو سره به یې د کابل او ګاونډیو ولایتونو د برښنا د کموالي ستونزه هواره شي.د اوبـو او انرژۍ وزیر په کابل ښار کې د اوبو سرچینو د کموالي ستونزې په هکله هـم یادونه کړې او ویلي یې دي، چې یـاد وزارت په دې برخـه کې ډېرې کړنې تـرسره کړې دي او په دې برخه کې د شاه او عـروس بند بشپړ او د للندر د شاتوت بند پروژه هم د راتلونکي کال په بودجه کې شـامله شوې ده.نوموړي زیاته کړې، له پنجشېر څخه کابـل ته د اوبو د لېږد پروژې د سروې او ډیزاین چارې هم بشپړې شـوې او د بودجې او نورو اړینو امکاناتـو پـه چمتو کېدو سره بـه یې په راتلونکي کې چارې پیل شي.په ورته مهال، د کابـل والي د اوبو او انرژۍ وزارت کړنې د ستاینې وړ بللې او خرګنده کړې یې ده، چې له نېکه مرغه تر اوسه پورې د اوبو او انرژۍ وزارت د رهبرۍ د دوامدارو هڅو له امله په کابل ښار کې د اوبو مدیریت او د انرژۍ د پراختیا په برخه کې ډېرې پروژې پلې شوې دي.

### د اوربند دویم پړاو خبرې ...

له مخې خوشې شي.ټاکل شـوې وه، چې ورمه ورځ اسرائیلي رژیم د خپلو۶ زندانیانو په بدل کې له ۶۰۰ زیات فلسطینیان خوشې کړي، خو صهیونیست رژیم د بندیانو د خلاصون پربکـړه ځنډولې ده.د اسرائیلو اصلي ملاتړې امریکا د فلسطیني بندیانو د خلاصـون د ځنډ په اړه د صهیونیستي رژیم له پرېکړې ملاتړ کړی. له بل لوري د اسرائیلو لومړي وزیر نتنیاهو ویلي، دوی غـزه کې د دویم پړاو جګـړې د پیل لپاره بشـپړ چمتووالی لري.که څه هم د حماس او اسرائیلو ترمنځ د لا زیاتو هوکړو لپاره خـبرې دوام لري، خـو د جګړې پای او د غزې راتلونکې لا هم معلوم نه دی.

### د کانونو او پټرولیم وزیر ...

افغانستان د کانې سرچینو له پلوه یو بډای هېواد دی او د اسلامي امـارت په راتګ سره ټولو کورنیـو او بهرنیو پانګوالو ته د پانګونې ښه زمینه برابره شوې ده او کولی شي د افغانستان د کانې سرچینو په برخه کې پانګونه وکړي.دغه راز یې د انرژۍ له وزیر، د جیولوجي پوهنتون له رئیس او د ازبیک دنفتو او ګازو له رئیس سره په لیدنه کې د افغان انجنیرانو د ظرفیت لوړولو او کانې زېرمو په اړه بحث او خبرې کړې دي او د یـاد هېواد له بېلا بېلو کارخونو څخه یې لیدنې هم کړې دي.همدارنګه له افغان پانګوالو سره یې په لیدنه کې د پانګونې په موخه د هر راز قانوني همکاریو ژمنه کړې او هغوی ته یې بلنه ورکړې، ترڅو په خپل هېواد کې پانګونه وکړي او خپل هېواد ته د خدمت جوګه شي.

### د پټې خزانې د لیکوال ...

د محمـد هوتک مقبره د زابل د سـیوري ولسـوالۍ ممو کلي کې موقعیت لري.پټه خزانه د هوتکي پاچاه شاه حسین هوتک د واکمنۍ پر مهـال د نامتو لیکوال محمد هوتـک هغه تذکره ده چې له ۱۱۴۱ بیا تر ۱۱۴۲ قمري کال پورې لیکل شـوې ده.په دغه کتاب کې د پښتـو ژبې د پنځوسـو شاعرانو او لیکوالانو ژوند لیکونه راټول شوي دي.

### د کندز روغتیایي ...

په همدې حال کې، د کندز د عامې روغتیا رئیس ډاکټر محمدالله حکمت له ((جک)) موسسې څخه د مننې په ترڅ کې ویلي، چې دغه وسایل به د روغتیایي مرکزونو د شته ستونزو په حل کې مرسته وکړي.

### در بلخ ۶ شبکه آبرسانی ...

و سه ذخیره آب با سیستم برق آفتابی است که در روستاهای شـهاب عربی ولسوالی بلخ، خدرخیل، ینگی‌قلعه، چمتال مرکزی، بارگاه افغانی و بارگاه ترکمنیه ولسـوالی چمتال سـاخته شده است.))باشندگان این روستاها، کمبود آب آشـامیدنی را یکی از مهمترین مشـکلات محل شـان بیان و از ایجـاد این شـبکه‌ها ابراز خرسـندی می‌کنند. آنهـا، می گویند که پیش از این عمده‌ترین عامل بیماری‌زا میان باشـندگان این ولسـوالی‌ها نبود آب آشامیدنی بود و تطبیق این پروژه‌ها گام مهم در جهت حل مشکلات کم‌آبی این مناطق است.

### جوزجان کې د خلکو ...

او قبایلو چارو رئیس د سـیمه ییزو قومي مشرانـو په ملتیا د یادو کلیـو د اختلافاتو د هـواري لپاره یـوه ناسـته را وبلله او د ښوونځي د ځمکې معلومولو په موخه یې د ټولـو خلکو نظرونـه واورېدل، چې له څېړنې او بحث وروسته د ټولو په همغږۍ د یوه تـن ګډونوال له لورې د ښـوونځي لپاره دوه جریبه ځمکه وقف شوه او ټولو لوریو پـرې موافقه وکړه او په دې سره یو لوې سـیمه ییز اختلاف حل شو.د یادولو وړ ده، چې دسرحدونو، قومونو او قبایلو چـارو وزارت د خپلـو محـلي ادارو او د شخړو د حل کمېسیونونو له لارې د هېواد په ټولو ولایتونو کې تر دې دمه د ولسونو ترمنځ زرګونه خپلمنځې بدۍ او شـخړې حل کـړې او په دې برخه کې نه سـترې کېدونکې هلې ځلې کوي.

# Hewad Daily

دورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر «بريالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلاري، د حضوری چمن ختیځ، کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: س ۰۲۰ - ۲۵۲۶۳۴۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼي انټرنېټي پاڼي دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

سه شنبه د شعبان المعظم ۲۶ مه ۱۴۴۶ق کال I د کب ۷ مه ۱۴۰۳ ل کال I د 2025م کال د فبروري ۲۵ مه


## راتلونکي کال کې د کابل د شاتوت بند پروژه پیلېږي



د اوبو او انرژۍ وزیر ملا عبداللطیف منصور د دې وزارت د غونډو په عمومي تالار کې د کابل له والي ملا امین الله عبید، د ګذر وکیلانو او د دغه ولایت له یو شمېر مشرانو سره لیدنه کړې. په دې لیدنه کې د کابل والي ملا امین الله عبید، وکیلانو او د کابل قومي مشرانو د وزارت د رهبرۍ کړنې وستایلې او خپلې ځینې ستونزې او وړاندیزونه یې هم له نږدې د اوبو او انرژۍ له وزیر سره شریک کړي دي. د اوبو او انرژۍ وزیر ملا عبداللطیف منصور ویلي: د اسلامي امارت مسئولین د افغانستان... ۳مخ

## حماس: د اوربند دویم پړاو خبرې د فلسطیني بندیانو آزادېدو پورې تړلې دي

حماس جهادي غورځنګ ویلي: د منځګړو هېوادونو له لارې اسرائیلو سره د اوربند هر ډول خبرې د ۶۰۲ فلسطیني بندیانو په خلاصون پورې تړلې دي.د حماس مخکښ غړي باسم نعیم ویلي: د اوربند هر ډول خبرې د فلسطیني بندیانو په خلاصون پورې تړلې دي، چې باید د مخکینۍ هوکړې... ۳مخ




## د کانونو او پټرولیم وزیر د ازبیکستان د بېلابېلو وزارتونو له استازو سره کتلي



د کانونو او پټرولیم وزیر ملا هدایت الله بدري د ازبیکستان هېواد د انرژۍ له وزیر او د بېلابېلو وزارتونو له استازو سره لیدنې کړې.د کانونو او پټرولیم وزارت وايي؛ ملا هدایت الله بدري او مل پلاوي ازبیکستان هېواد ته د خپل رسمي سفر په ترځ کې د یاد هېواد د انرژۍ له وزیر، د نفتو او ګازو له رئیس، د ازبیکستان د جیولوجي پوهنتون له رئیس، د معلوماتي ټکنالوجۍ له مرستیال، په ازبیکستان کې له افغان سوداګرو سره له تکنو پارک او کانونو میوزیم څخه لیدنې کړې دي.یاد وزارت زیاتوي؛ نوموړي په دغو لیدنو کې د یاد هېواد پانګوالو ته بلنه ورکړې او ویلي یې دي... ۳مخ

## د لرغونپوهنې کمېټې نوبتي غونډه ترسره شوه




د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر او کلتور د معین مولوي عتیق الله عزیزي په مشرۍ، د لرغونپوهنې کمېټې نوبتي ناسته ترسره شوه. باختر آژانس ته په رارسېدلې خبرپاڼه کې راغلي، چې په دې ناسته کې، ارزګان کې د ترلاسه شویو یو شمېر تاریخي اثارو د تثبیت او څرنګوالي او همدارنګه په کابل ښار کې د بابر بڼ، چهلستون بڼ، تېمورشاهي بڼ او یو شمېر نورو تاریخي او تفریحي بڼونو د ساتنې او مېله والو ته د آسانتیاوو برابرولو په اړه خبرې شوې دي.د ناستې په پای کې، د لرغونپوهنې رئیس ذبیح الله سادات، د هېواد په لوېدیځ کې د ټاپي پروژې نل لیکې له تېرېدونکو سیمو څخه د ترسره شوې سروې راپور وړاندې کړی دی.

## د پټې خزانې د لیکوال مقبره رغول کېږي

د زابل ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس مولوي رحمت الله حماد د پټې خزانې د لیکوال محمد هوتک له مقبرې څخه د لیدنې پر مهال د دغې مقبرې د رغولو خبر ورکړی دی.ښاغلي حماد د محمد هوتک مقبره د زابل له تاریخي ابدو بللې او په خبره یې، دغه ریاست په پام کې لري د محمد هوتک مقبرې ودانۍ او استنادي دېوال ورغوي. مولوي حماد همداراز ویلي، د زابل د تاریخي ځایونو او ابدو بیارغونې او ساتنې ته ځانګړې پاملرنه کوي... ۳مخ

## د کندز روغتیايي مرکزونه په طبي وسایلو سمبال شول

د کندز د عامې روغتیا ریاست مسئولینو د دې ولایت له ۴۵ روغتیایي مرکزونو سره د ۳۵ قلمه بېلابېلو طبي او غیرطبي وسایلو د مرستې خبر ورکړي. دا مرسته د ((جک)) موسسې له خوا شوې، چې پکې ۳۵ ډوله طبي او غیرطبي وسایل او یو امبولانس شامل دي.سرچینې ویلي: دا توکي د کندز د مرکز او ولسوالیو روغتیایي مرکزونو ته سپارل شوي دي... ۳مخ

## د کندهار ډنډ ولسوالۍ کې روغتیايي مرکز جوړ شو




د کندهار د افغاني سرې میاشتې ټولنې مسئولین وايي، چې د یاد ولایت په ډنډ ولسوالۍ کې د څه باندې ۶ میلیونو افغانیو په لګښت یو روغتیايي مرکز جوړ او ګټې اخیستنې ته سپارل شوي دي.د یادې ټولنې ویاند محمد شعیب اغا باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې دغه روغتیايي مرکز د یاد ولایت د ډنډ ولسوالۍ په کرزسیمه کې د قطر هېواد د سرې میاشتې ټولنې په مالي ملاتړ د ۶ میلیونه ۳۹۰ زره افغانیو په لګښت جوړ او ګټې اخیستنې ته سپارل شوي دي.
د یادونې وړ ده، چې دغه روغتیايي مرکز به د سیمې ۳۵۰۰ تنو اوسېدونکو ته د اساسي روغتیايي خدمتونو وړاندې کولو په برخه کې مهم رول ولوبوي

## در بلخ ۶ شبکه آبرسانی ساخته شد



مسئولین ریاست احیا و انکشاف دهات بلخ، می‌گویند که شش شبکه آبرسانی در ولسوالی‌های چمتال و بلخ این ولایت ساخته شده است.به گفته مسئولین، با ساخت این شش شبکه برای نزدیک به ۱۰۰۰ خانواده زمینه دسترسی به آب آشامیدنی فراهم شده است.یارمحمد شبیر، رئیس احیا و انکشاف دهات بلخ، می‌گوید که این شش شبکه آبرسانی در یک سال با پشتیبانی مالی نهاد «WHH» ساخته شده و دیروزبه بهره‌برداری رسیده است.رئیس احیا و انکشاف دهات بلخ، می‌افزاید که ساخت این شبکه‌های آبرسانی حدود ۲۴ میلیون افغانی هزینه برداشته است.یارمحمد شبیر، تأکید می‌کند: (( این شبکه‌های آبرسانی شامل سه دربند حوض سرپوشیده ... ۳مخ

## جوزجان کې د خلکو ترمنځ ۳ کلن اختلافات حل شول



د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو وزارت وايي؛ د جوزجان ولایت په مرکز شبرغار ښار کې د ګل اباد، نیک اباد، نواباد عربیه او څو نورو کلیو ترمنځ د ښوونځي د ځمکې پر سر درې کلن اختلاف تېره ورځ د یاد ولایت د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو ریاست په منځګړیتوب او د سیمه ییزو مشرانو په هڅو د یوې ناستې په ترځ کې حل شو.یاد وزارت زیاتوي؛ د دې شخړې د حل په موخه د جوزجان ولایت د سرحدونو، قومونو... ۳مخ

د ملګرو ملتونو سازمان د کډوالو عالي کمېشنري:

## تېر میلادي کال موږ په افغانستان کې ۱۹۰ دایمي کورونه جوړ کړل



د ملګرو ملتونو د کډوالو عالي کمېشنرۍ (UNHCR) په هېواد کې د ۱۹۰ دایمي سرپناوو د جوړېدو خبر ورکړی.دې اداري ویلي چې دا ۱۹۰ سرپناوې د جاپان د ملاتړ اداري او WSTA سازمان په همکارۍ د هېواد په مرکزي سیمو کې جوړې شوې دي. د ملګرو ملتونو د کډوالو عالي کمېشنرۍ دا هم ویلي ، چې دا سرپناوې په ۲۰۲۴ کال کې جوړې او ګټې‌اخیستنې ته سپارل شوې دي.په وروستیو درېوو کلونو کې په هېواد کې د اقلیمي بدلون له امله ډېر کسان بېځایه شوي او همداراز له ګاونډیو هېوادونو د افغانانو راستنېدل هم زیات شوي دي. له دې مخکې دافغان حکومت مسئولینو ویلي، د راستنېدونکو افغانانو لپاره ښارګوټي جوړېږي او په دې برخه کې د ځمکو د ثبت او وېش لړۍ پیل شوې ده. د ویلو وړ ده، چې په هېواد کې د تېرو دوو کلونو خونړیو زلزلو له امله هم لسګونه کسان بېځایه شوي چې ځینې یې لا هم د سرپناه د نه‌لرلو له ستونزې سره مخ دي.

## د کندهار خاکرېز ولسوالۍ کې ۲ بندونه جوړېږي



د کندهار د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولینو د یاد ولایت په خاکرېز ولسوالۍ کې د اوبو د ۲ بندونو د جوړېدو خبر ورکړي دي.د یاد ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست ویاند محمد حنیف حقمل وایي، چې د کانونو ریاست په پراختیایي بودیجه، د کندهار د خاکرېز ولسوالۍ په بي بي ګوهر او تمبیل سیمه کې د ۱۸ میلیونو افغانیو په لګښت د اوبو دوه بندونه جوړېږي.
د یادونې وړ ده، چې د یادو بندونو د جوړېدو موخه د تر ځمکې لاندې اوبو د کچې لوړول او د بزګرانو او مالدارانو لپاره د اوبو د ستونزو کمول دي.